اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى سَيِّدِ الْمُرْسَلِيْنَ
اَمَّا بَعْدُ فَاَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ ؕ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ؕ

# فيضانِ امام بُخاري رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْه

**دعائے عطّار:** يا ربّ كريم! څوك چې دا رساله "فيضانِ امام بخاري رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْه" اولولي يا ئې واوري، هغه ته د امام بُخاري رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْه د عشقِ رسول نه حصَّه عطا كړې او بے حسابه ئې اوبخښې. اٰمِين بِجَاهِ النَّبِيِّ الْاَمِين صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم

## د درود شريف فضيلت

د الله پاك خوږ حبيب صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم ارشاد فرمائيلي دي: څوک چې په ما باندي يو ځل درود شريف اوليږي، الله پاك به په هغه باندي لس ځله رحمتونه نازل كړي. (مسلم شريف، ص172 حديث912)

صَلُّوْا عَلَى الْحَبِيْب!　　صَلَّى اللهُ عَلٰى مُحَمَّد

## بيرته بِينا شو (حكايت)

د يو وړوكي ماشوم والد وفات شوے وو، د **الله** پاك كار وو چې په ماشوم والي كښې هغه [ماشوم] په سترګو نابِينا شو. د هغه نيك سيرته والِده صاحِبه ډيره خفه شوه، هغې د خپل بچي علاج هم اوكړو خو د هغه د سترګو نظر بيرته رانغلو، بے وسه مور ئې ډيره پريشانه شوه، هغې به د دې غمه ژړل او د **الله** پاك نه به ئې د خپل بچي د بِينائي بيرته راتلو دُعاګاني كولې، د الله پاك رحمت په جوش كښې راغلو او په هغې نيكه بي بي باندې ئې رحم اوفرمائيلو. داسې اوشو چې يوه شپه د هغې قِسمت بيدار شو، په خوب كښې ورته د **الله** پاك خليل حضرت اِبراهيم عَلَيْهِ السَّلَام تشريف راوړو او ورته ئې

ارشاد اوفرمائيلو: الله پاك ستا د دُعاګانو په وجه ستا د بچي ستركي بينا كړي دي. سحر چې راپاځيدله نو خپل خوږ ماشوم ئې اوليدلو نو **اَلْحَمْدُلِلّٰه!** د هغه ستركي بينا شوي وے.

(تفهيمُ البُخاری، ج1، ص4 مُلَخَّصاً)

**خوږو او محترمو اسلامي ورونړو!** آيا تاسو ته معلومه ده چې هغه خوش نصيبه ماشوم څوك وو؟ آو جي! هغه ماشوم وروسته لوئي مُحَدِّث جوړ شو، او هغوئي د امام بُخاري رَحْمَةُاللهِعَلَيْه په نوم ياديږي. **د اللّٰهُ رَبُّ الْعِزَّت دِ په هغوئي رحمت وي او د هغوئي په خاطر دِ زمونږه بے حِسابه بخښنه اوشي.** اٰمِيْن بِجَاهِ النَّبِيِّ الْاَمِيْن صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم

## د امام بُخاري رَحْمَةُاللهِعَلَيْه تعارُف

امام بُخاري رَحْمَةُاللهِعَلَيْه په 13 شوال 194 هجرئ كښې د جُمعې مباركې په ورځ (د اُزبكستان په يو ښار) بُخارا كښې پيدا شو. د هغوئي نوم مُحَمَّد او كنيت ابو عبدُ الله دے. (فتح البارى، ج1، ص452) د هغوئي په القاباتو كښې دا هم دي: اَمِيرُ المُؤمِنِين فِي الحديث، حافِظُ الحديث، ناصِرُ الاحاديثِ النَّبَوِيَّه، حِبرُ الاسلام، سَيِّدُ الفُقَهاءِ وَالمُحَدِّثِين، اِمامُ المُسلِمِين او شيخُ المُؤمِنِين وغيره. (سير اعلام النبلاء، ج10، ص299، طبقاتُ الشافعيه الكبُرٰى، ج2، ص212، مقدمه نُزهةُ القارى، ج1، ص106، الاعلام للزركلى، ج6، ص34)

## د امام بُخاری رَحْمَةُاللهِعَلَيْه والد صاحب

**خوږو او محترمو اسلامي ورونړو!** د امام بُخارى رَحْمَةُاللهِعَلَيْه والد صاحب حضرت اسماعيل بِن ابراهيم رَحْمَةُاللهِعَلَيْه د اِمام مالك رَحْمَةُاللهِعَلَيْه شاګرد او ولیِٔ كامل حضرت عبدُالله بِن مبارك رَحْمَةُاللهِعَلَيْه صحبت يافته وو. د هغوئي رَحْمَةُاللهِعَلَيْه د تقوٰى او پرهيزګارئ عالَم دا وو چې خپل مال و دولت به ئې د شُبهاتو (داسې څيزونه چې د هغې په حلال او

حرام كيدو كښې شك وي د هغې) نه بچ ساتلو. د وفات په وخت كښې ئې ارشاد اوفرمائيلو: زما سره چې څومره مال دے زما د علم مطابق په هغې كښې يو هم شك والا درهم نشته. (ارشاد الساری، ج1، ص55) د الله پاك دِ په هغوئي رحمت وي او د هغوئي په بركت دِ زمونږه بے حسابه بخښنه اوشي. اٰمِيْن بِجَاهِ النَّبِيِّ الْاَمِيْن صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم

نہ مجھ کو آزما دُنیا کا مال و زر عطا کر کے عطا کر اپنا غم او چشمِ گریاں یا رسولَ اللہ

(وسائل بخشش مرمم ص 340)

صَلُّوْا عَلَى الْحَبِيْب! صَلَّى اللهُ عَلٰى مُحَمَّد

## د نيكو والدينو بركتونه

**خوږو او محترمو اسلامي ورونړو!** د امام بُخاري رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْه د والد تقوٰى او پرهيزګارئ څه شان وو، واقعي شك والا مال نه بچ كيدل لوئ كمال دے، خو افسوس! نن د شك والا مال نه بچ كيدل خو لا لرې خبره ده، خلق د حرامو نه نه بچ كيږي، ياد لرئ! د حرام مال غټ سپيروالے دے، حرام مال د نسلونو كردار بربادولے شي، د خپل اولاد د شريعت و سُنَّت مطابق پالنه كولو سره سره حلال ګټلو او حلال خوړلو ضرور خيال ساتئ، ګنې ياد ساتئ! د حرام مال خوړلو سپيروالي په وجه به د قيامت په ورځ سخته سزا دركولے شي، يو دردناك روايت واورئ او دحلال ګټلو، حلال خوړلو فِكر اوكړئ، خدائ دِ نكړي كه چرته مو حرام مال حاصل كړے وي نو د هغې نه رښتيني توبه اوكړئ او د هغې په باره كښې د مفتئِ اسلام نه رهنمائي واخلئ او ځان خلاص كړئ ګنې سخته پريشانه كيدے شئ.

## د بدنصيبه خاوند او پلار (حكايت)

په روايت کښې دي: د سړي سره تَعَلُّق لرونکو کښې به وړومبې د هغه بي بي او د هغه اولاد وي، دا ټول (يعنې بي بي، بچي به په ورځ د قيامت) د الله پاك مخے ته ولاړ وي، عرض به اوکړي: اے زمونږه ربه! مونږ ته د دې کس نه زمونږه حق راکړې، ځکه چې ده کله هم مونږ ته د ديني کارونو تعليم نه دې راکړے او ده به په مونږه "حرام" خوړلو او مونږ ته د هغې علم نه وو، بيا به هغه کس د "حرامو په ګټلو" دومره اووهلے شي چې د هغه غوښه به اورژيږي، بيا به هغه کس د ميزان [د تلے] خوا ته راويستے شي، فرښتې به د غر همره د هغه نيکئ راوړي، نو د هغه بال بچو نه به يو کس په را مخکښې کيدو اووائي: زما نيکئ لږې دي، نو هغه به د هغه د نيکو نه واخلي، دغه شان د هغه د کور افراد به د هغه ټولې نيکئ واخلي او هغه به خپل اهل و عيال ته په ډيره مايوسئ اوګوري او اووائي به: اوس زما په څټ باندې هغه ګناه او ظلمونه پاتي شو کوم چې ما ستاسو د پاره کړي وو. فرښتې به اووائي: دا هغه (بدنصيبه) کس دے د چا نيکئ چې د هغه د کور کسانو واخستې او دا د هغوئي په وجه دوزخ ته لاړو. (قرة العيون، ص401، نيکيوں کی جزائيں اور گناہوں کی سزائيں، ص93)

ياربّ بچالے تُو مجھے نارِ جحيم سے اولاد پر بھی بلکہ جہنّم حرام ہو

(وسائل بخشش مرمم ص 340)

## د نيك كار سره د حرامو اخستل خرڅول

د الله پاك آخري نبـي مُحَمَّدِ عربي صَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم ارشاد فرمائيلي دي: د قيامت په ورځ به څه خلق پيش کړے شي د کومو سره چې به د تِهامه د غر برابر نيکئ وي خو چې کله هغوئي راويستلے شي نو الله پاك به د هغوئي ټولې نيکئ باطلې کړي او بيا به هغوئي دوزخ ته غوزار کړے شي.

عرض اوکړے شو: يـارَسُـولَ الله صَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلَيۡهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم! د دې څه وجه ده؟ ارشاد ئې اوفرمائيلو: هغه خلقو به لمونځونه کولو، زکوٰة به ئې ورکولو او حج به ئې کولو خو چې کله به د هغوئي مخې ته حرام راغلل نو هغه به ئې اخستلو الله پاك د هغوئي اعمال باطل کړه.

(کتاب الکبائر، ص136)

جو ڈاکے نیں خیانت سے چمکائیں گے! کیا اُنہیں زَر کے انبار کام آئیں گے؟
قہرِ قہار سے کیا بچا پائیں گے؟ جی نہیں، نارِ دوزخ میں لے جائیں گے

## خوفناك آواز

په يو بل حديثِ پاك کښې دي: چا چې د حرام يو څيز خوړلے وي د هغه په خيټه کښې به اور بل کړے شي او هغه چې کوم وخت د خپل قبر نه را پاڅي ټول مخلوق به د هغه د خوفناك آواز نه اورېبږي تردې چې الله پاك به د مخلوق په مينځ کښې کومه فيصله فرمائي اوبه فرمائي.

(قرة العيون، ص392)

**خوږو او محترمو اسلامي ورونړو!** که مور و پلار په قرآن و حديث باندې عمل کوونکي، د الله ويره لرونکي وي نو اولاد به هم د مور وپلار په فيض سره د تقوٰی و پرهيزګارئ په لاره روان وي. د امام بُخاري رَحۡمَةُ اللّٰهِ عَلَيۡه مور و پلار ته د عبادت و پرهيزګارئ دُنياوي نفع کومه چې دې حضراتو ته نصيب شوه هغه د هغوئي د ځوئ ''اِمامُ المُحَدِّثين'' کيدو په صورت کښې نصيب شوه، کوم چې په ټوله دُنيا کښې خلق د ''اِمام بُخاري رَحۡمَةُ اللّٰهِ عَلَيۡه'' په نوم سره ياد ساتي او د هغوئي د ليکونکي مشهور کتاب ''صحيح بُخاري'' د فيضان نه مالا مال کيږي.

بے ادب ماں باادب اولاد جن سکتی نہیں معدنِ زر معدنِ فولاد بن سکتی نہیں

صَـلُّـوْا عَـلَى الْـحَـبِـيْـب!　　صَلَّى اللهُ عَلٰى مُحَمَّد

## د نيك والدينو بركتونه

حضرت عبدُ الله بِن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمائي: بيشکه الله پاك د انسان د نيکو کارئ په وجه د هغه اولاد او اولاد، در اولاد [يعني ځامن، نمسي او د نمسو د ځامنو] اصلاح فرمائي او د هغه د نسل او ګاونډيانو حفاظت کوي او هغه ټول د الله له طرفه په پرده او امان کښې اوسي. (تفسير درمنثور، ج5، ص422)

*پیر و مرشد پر مرے ماں باپ ہو سدا رحمت اے نانائے حسین*

**خوړو او محترمو اسلامي ورونړو!** د حديثِ پاك په مبارکه دُنيا کښې چې کومه مرتبه او مقام امام بُخاري رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْه ته حاصل شوي دے د هغې مثال ډير اوچت دے، هغوئي رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْه ته په لکونو احاديثِ مبارکه زباني ياد وو، په هغوئي رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْه باندې د الله پاك او د خوږ نبـي صَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم خاص فضل و کرم وو. امام بُخاري رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْه يو ځل خوب اوليدلو چې زه د خوږ آقا صَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم د بدن مبارك نه مچان شړم، په خوب ليدلو ډير پريشانه شو چې د حُضُورِ اکرَم صَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم په مبارك بدن باندې کله هم مچان نه دي ناست. علمائے کرامو د خوب دا تعبير بيان کړو: چې تاسو ته دِ مبارك شي، په احاديثو کښې چې چا [د خپل ځان نه څه الفاظ] ملاؤ کړي دي هغه به تاسو پاك و صاف کړئ.

(مقدمه فتح الباری، الفصل الاول، ج1، ص9)

## د اُستاذ نظر کوم ځائ ته اورسولو (حکايت)

حضرت امام محمد بِن اسماعیل بُخاري رَحۡمَۃُاللہِعَلَیۡہ د امام اعظم ابوحنیفه رَحۡمَۃُاللہِعَلَیۡہ قابل ترین شاګرد اِمام محمد رَحۡمَۃُاللہِعَلَیۡہ په خدمت بابرکت کښې حاضر شو او په فقه کښې "کتاب الصلوٰۃ" ئې زده کول شروع کړه. اِمام محمد رَحۡمَۃُاللہِعَلَیۡہ چې کله د هغوئي طبیعت علمِ حدیث طرف ته مائل اولیدلو نو هغوئي ته ئې اوفرمائیل: "تاسو لاړ شئ او علمِ حدیث حاصل کړئ." چې کله اِمام بُخاري رَحۡمَۃُاللہِعَلَیۡہ د خپل اُستاذِ محترم رَحۡمَۃُ اللہِعَلَیۡہ مشوره قبوله کړه او علمِ حدیث حاصلول ئې شروع کړه نو لیدونکو اولیدلو چې هغوئي رَحۡمَۃُ اللہِ عَلَیۡہ د ټولو اَئِمَّه حدیث نه مخکښې شو.

(راهِ علم، ص36، تعلیمُ المُتَعَلِّم، ص52)

## د څلویښتو کالو پورې ئې وچه ډوډئ خوړله (حکایت)

اے عاشقانِ اِمام بُخاري! اِمام بُخاري رَحۡمَۃُاللہِعَلَیۡہ د علم د طلب په دوران کښې بعضې وخت وچ بوټي خوړلي دي او وخت ئې تیر کړے دے، هغوئي به په ورځ کښې صرف دوه یا درے بادامه خوړل. یو ځل بیمار شو نو ډاکټرانو اووئیل چې د اوچې ډوډئ خوړلو په وجه د دوئي کولمې اوچې شوي دي، هغه وخت هغوئي رَحۡمَۃُاللہِ عَلَیۡہاوفرمائیل: د څلویښتو کالو نه زه اوچه ډوډئ خوړم او په دې موده کښې ما بالکل سالن [یعني اینګولے] نه دې خوړلے. (تذکرۃ المُحَدِّثین، ص183 بتغیرٍ)

## باکمال قُوَّتِ حافظه (حکایت)

حضرت محمد بِن ابي حاتم فرمائي: ما د حاشد بن اسماعیل او یو بل بُزُرګ نه اوریدلي دي، هغوئي دواړه بیانوي چې اِمام بُخاري رَحۡمَۃُاللہِعَلَیۡہ په کم عمر کښې زمونږ سره علمِ حدیث حاصلولو د پاره د بصرې د علمائے کرامو په خدمت کښې

حاضریدلو، د امام بُخاري رَحْمَةُاللّٰهِ عَلَيْه نه علاوه مونږ ټولو ملګرو به احادیث محفوظ کولو د پاره لیکل، شپاړس ورځو تیریدو نه پس یوه ورځ مونږه اِمام بُخاري رَحْمَةُاللّٰهِ عَلَيْه اورټلو چې تاسو احادیث محفوظ نه کولو په وجه د دومره ورځو محنت ضائع کړو. د دې په اوریدلو اِمام بُخاري رَحْمَةُاللّٰهِ عَلَيْه مونږ ته ارشاد اوفرمائیل: ښه ده تاسو خپل لیکونکي صفحې راوړئ، مونږه خپلې خپلې صفحےراوړې، اِمام بُخاري رَحْمَةُاللّٰهِ عَلَيْه احادیثِ مبارکه زباني لوستل شروع کړه، تردې چې هغوئي د پینځَلَّس زرو نه زیات احادیث زباني واورول، د دې په اوریدلو زمونږ ګمان شو چې مونږ ته دا روایات اِمام بُخاري رَحْمَةُاللّٰهِ عَلَيْه لیکلي دي.

(ارشاد الساری، ج1، ص59 مفهوماً)

## اویا زره احادیث ورته یاد وو (حکایت)

**خوږو او محترمو اسلامي ورونړو!** اِمام بُخاري رَحْمَةُاللّٰهِ عَلَيْهبه چې کوم کتاب یو ځل اوکتلو هغه به ورته زباني یادیدلو. د علم حاصلولو په شروع ورځو کښې هغوئي رَحْمَةُ اللّٰهِ عَلَيْهته اویا زره احادیث زباني یاد وو او وروسته دا شمیر درې لکو (یعنې 3 لاك) ته اورسیدلو، یو ځل حضرت سُلیمان بِن مجاهد رَحْمَةُاللّٰهِ عَلَيْه د حضرت محمد بِن سلام رَحْمَةُاللّٰهِ عَلَيْه په خدمت کښې حاضر شو نو حضرت محمد بِن سلام رَحْمَةُاللّٰهِ عَلَيْهحضرت سُلیمان بِن مجاهد رَحْمَةُاللّٰهِ عَلَيْه ته اوفرمائیل: که تاسو لږ ساعت مخکښې راغلي وے نو ما به تاسو ته هغه ماشوم ښودلے وے کوم چې د اویازره احادیثو حافظ دے. دې هیرانوونکي خبره اوریدلو باندې د حضرت سُلیمان بِن مجاهد رَحْمَةُاللّٰهِ عَلَيْه په زړه کښې د امام بُخاري رَحْمَةُاللّٰهِ عَلَيْه سره د ملاقات کولو شوق پیدا شو، د حضرت محمد بِن سلام رَحْمَةُاللّٰهِ عَلَيْهد محفل فارغیدو نه پس حضرت سُلیمان بِن مجاهد رَحْمَةُاللّٰهِ عَلَيْه د امام بُخاري رَحْمَةُاللّٰهِ عَلَيْه لټون شروع کړو، چې کله ئې (د امام بُخاريرَحْمَةُاللّٰهِ عَلَيْهسره) ملاقات اوشو نو حضرت سُلیمان بِن مجاهد رَحْمَةُاللّٰهِ عَلَيْه اوفرمائیل: آیا د اویا زره احادیثو حافظ تاسو ئې؟ د دې په اوریدلو

امام بُخاري رَحْمَةُاللهِعَلَيْه اوفرمائيل: آو جي! زه هم هغه حافظ يم، بلکه ما ته د دې نه زيات احاديث ياد دي او د کومو صحابهٔ کرامو علیهِمُ الرِّضوان او تابعينو عليهِمُ الرَّحمه نه زه روايت کووم په هغوئي کښې د اکثرو تاريخ پيدائش، د اوسيدلو ځائ او تاريخ وفات هم پيژنم.

(ارشاد الساری، ج1، ص59)

## د حافظې مضبوطيدلو يو راز

د اِمام بُخاري رَحْمَةُاللهِعَلَيْه نه تپوس اوکړے شو: آيا د حافظې مضبوطولو هم څه دوا شته دے؟ هغوئي رَحْمَةُاللهِعَلَيْه اوفرمائيل: دوا خو را ته معلومه نه ده، البته ما ډيره توجه او استقامت سره مطالعه کول د قُوَّتِ حافظه د پاره ډير فائده مند مونډلي دي.(فتح البأری، ج1، ص460)

## د امام بُخاري رَحْمَةُاللهِعَلَيْه حديث داني

محمد بِن اسحٰق بِن خُزيمه رَحْمَةُاللهِعَلَيْه فرمائي: ما د آسمان لاندې د محمد بِن اسماعيل بُخاري رَحْمَةُاللهِعَلَيْه نه زيات د حديث يو عالِم او حافظ نه دے ليدلے، تردې پورې وئيل کيږي چې کوم حديث "محمد بِن اسماعيل" نه پيژني هغه حديث نه دے.

## بُخاري شريف ئې څنګه ليکلے دے؟

اِمام بُخاري رَحْمَةُاللهِعَلَيْه فرمائي: ما چې کله هم په خپل کتاب (**صحيح بُخارى**) کښې د حديث ليکلو اراده کړې ده نو د هغې نه مخکښې مې غُسل کړے دے او دوه رکعته لمُونځ مې ادا کړے دے. ما په دې کتاب کښې موجود احاديث د شپږ لکو احاديثو

نه منتخب کړي دي، ما په شپاړسو کالو کښې دا کتاب ليکلے دے او دا کتاب زما او د الله پاك په مينځ کښې حُجَّت (يعنې دليل دے) دے. (المُستطرف، ج1، ص40)

## د بُخاري شريف مقبوليت

**خوږو او محترمو اسلامي ورونړو!** داسې خو امام بُخاري رَحۡمَةُاللهِ عَلَيۡه ډير کتابونه ليکلي دي، خو کوم مقبوليت او شُهرت "بُخاري شريف" ته حاصل دے بل کتاب ته نه دے حاصل شوے، اِمام ابوزيد مَروَزِی رَحۡمَةُاللهِ عَلَيۡه فرمائي: زه يو ځل په مکه مکرمه کښې د مقامِ اِبراهيم او حجرِ اسوَد په مينځ کښې اوده ووم چې په خوب کښې مې د الله پاك آخري نبـي صَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلَيۡهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم زيارت اوکړو، نبـي کريم صَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلَيۡهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم ارشاد اوفرمائيلو: اے ابو زيد! زما د کتاب درس ولے نه ورکوے؟ ما عرض اوکړو: يَا رسُـولَ الله صَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلَيۡهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم! زما ځان په تاسو قربان! ستاسو کتاب کوم يو دے؟ حُضُورِ اکرَم صَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلَيۡهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم ارشاد اوفرمائيلو: د محمد بِن اسماعيل (يعنې د امام بُخاري رَحۡمَةُاللهِ عَلَيۡه) کتاب "بُخاري شريف".

(بستانُ المُحَدِّثين، ص274، 275 ملتقطاً)

## د بُخاري شريف شان و عظمت

**اے عاشقانِ رسول!** د بُخاري شريف په باره کښې وئيل کيږي: "**اَصَحُّ الْكُتُبِ بَعْدَ كِتابِ اللهِ الصَّحِيْحُ الْبُخَارِی**" يعنې د قرآنِ کريم نه پس د ټولو نه دُرُست کتاب "صحيح بُخاري" دے. د دې کتاب پورا نوم دا دے: "**اَلْجَامِعُ الْمُسْنَدُ الصَّحِيْحُ الْمُخْتَصَرُ مِنْ اُمُوْرِ رَسُوْلِ اللهِ وَسُنَنِهٖ وَ اَيَّامِه**". حضرت علامه علي قاري رَحۡمَةُاللهِ عَلَيۡه فرمائي: بُزُرګانو ليکلي دي: که يو مشکل کښې "صحيح بُخاري" اولوستې شي نو هغه مشکل به لرې شي او دا کتاب کومه کشتۍ کښې وي هغه به نه ډوبيږي، د قحط (يعنې باران نه کيدو) په وخت کښې دا اولوستې شي نو باران کيږي. حضرت امام اَصِيلُ الدِّين رَحۡمَةُاللهِ عَلَيۡه فرمائي: ما د خپل ځان او نورو خلقو د مشکلاتو او پريشانۍ د پاره د "صحيح بُخاري"

120 ځله ختم کړے دے نو ټول مرادونه او ضرورتونه مې پورا شوي دي، دا ټول برکتونه د سرورِ کائنات صَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم دي.
(مرقاة، ج1، ص54)

حضرت مفتـی احمد يار خان نعيمي رَحْمَةُاللهِعَلَيْه فرمائي: په مصيبتونو کښې ختمِ بُخاري کيږي، د دې په برکت او د الله پاك په فضل سره مصيبتونه ختميږي.
(مرآةالمناجيح، ج1، ص11 مفهوماً)

## د اِمام بُخاري عاداتِ مُبارَکه

**خوږو او محترمو اسلامي وروڼو!** شپه ورځ يو کولو سره او خپل مقصد پورا کولو جذبے سره کاميابي او ترقي حاصليږي، په فضول کارونو کښې ورځ ضائع کول او شپې په غفلت کښې تيروونکي خلق هيڅ کله کاميابي نه شي حاصلولے، امام بُخاري رَحْمَةُاللهِعَلَيْه به د عيش و عشرت نه لرې اوسيدلو، د شبهاتو نه ځان بچ کيدل ورته د پلار نه په ميراث کښې ميلاؤ وو، د حقوقُ العبادو په حفاظت کولو کښې يو مثالي نمونه وه، د عشقِ رسول کيفيت ئې دا وو چې د خوږ نبـي صَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم وينېته مبارك ئې ځان سره ساتلو. هغوئي رَحْمَةُاللهِعَلَيْه به ډير کم خوراك کولو، د خپل نِيَّت ئې ښه حفاظت کولو.

د هغوئي رَحْمَةُاللهِعَلَيْه د عبادت ذوق هم مثالي وو، ټوله شپه به ويخ پاتي کيدلو او عبادت به ئې کولو، ډير زيات نفلونه به ئې ادا کول، هره ورځ به د نيمې شپې پاڅيدلو او لس سيپارې تلاوت به ئې کولو، په رَمَضَانُ المُبَارَك کښې به ئې هره ورځ د يو قرآنِ پاك ختم کولو، په تراويح کښې قرآنِ پاك ختمول د هغوئي په معمولاتو کښې شامل وو. (سير اعلام النبلاء، ج10، ص303، تهذيب الاسماء واللغات، ج1، ص93، طبقاتُ الشافعيه الکبرٰی، ج2، ص224)

## د امام بُخاري روزګار

**خوېږو او محترمو اسلامي ورونړو!** امام بُخاري رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْه زميندار او سوداګر وو، هغوئي رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْه ته د پلار نه په ميراث کښې ډېر مال پاتي شوے وو کوم ئې چې په مضارَبَت ورکړے وو. (مصابيح الجامع للدماميني، ج5، ص49، فتح الباري، ج1، ص454)

يو ځل هغوئي رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْه اوفرمائيل: ما ته به هره مياشت 500 درهمه ګټه راتله او ما به هغه ټول د علم په طلب کښې خرچ کوله.

(سير اعلام النبلاء، ج10، ص309)

## د شهدو مچۍ 17 ځله اوچيچلو (حکايت)

اِمام بُخاري رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْه يوه ورځ لمُونځ ادا کولو، د شهدو مچۍ هغوئي رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْه 17 ځله اوچيچلو، د لمُونځ پورا کولو نه پس ئې اوفرمائيل: لږ اوګورئ دا څه څيز دے کوم چې په لمَانځه کښې ما ته تکليف راکولو؟ شاګردانو چې اوکتل نو د هغوئي رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْه ملا 17 ځائ پړسيدلي وه. امام بُخاري رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْه د شهدو مچۍ 17 ځله چيچلو باوُجود لمُونځ نه ماتولو مُتَعَلِّق اوفرمائيل: ما د يو آيت تلاوت کولو او زما دا خواهش وو چې زه دا آيت پورا کړم. (هدى الساري مقدمه فتح الباري، ص 455 ملتقطاً)

**اے عاشقانِ رسول!** تاسو اوليدل! په لمَانځه کښې د خشوع انداز! الله پاك دِ د امام بُخاري رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْه په برکت مونږ ته هم د عبادت او تلاوتِ قرآن توفيق رانصيب کړي.

بنادے مجھے نیک نیکوں کا صدقہ گناہوں سے ہر دم بچا یا اِلٰہی
عبادت میں گزرے مری زندگانی کرم ہو کرم یا خدا یا اِلٰہی

(وسائل بخشش مرمم، ص105)

صَلُّوا عَلَى الْحَبِيْب! صَلَّى اللهُ عَلٰى مُحَمَّد

## د جمات ادب

يو ځل اِمام بُخاري رَحْمَةُاللهِعَلَيْه په جمات کښې وو، يو کس د خپلې ګيرې نه ډکے ويستلو او په جمات کښې ئې غوزار کړو! هغوئي رَحْمَةُاللهِعَلَيْه پاڅيدلو او هغه ډکے ئې په خپل لستونړي کښې کيښودو چې کله د جمات نه بهر شو نو غوزار ئې کړو. (تاريخِ بَغداد، ج2، ص13)

## کله ئې هم غِيبَت نه دے کړے

اِمام بُخاري فرمائي: زه اُمِّيد کووم چې د الله پاك په بارګاه کښې به په داسې حال کښې حاضريږم چې هغه به زما نه د غِيبَت حساب نه اخلي ځکه چې ما د چا غيبت نه دے کړے. (تاريخِ بَغداد، ج2، ص13)

## نيت بدليدل ئې خوښ نه کړل (حکايت)

حضرت بَکر بِن منير رَحْمَةُاللهِعَلَيْه بيانوي: يو ځل يو کس اِمام بُخاري رَحْمَةُاللهِعَلَيْه ته سامان را اوليږلو، د ماښام په وخت کښې د هغوئي رَحْمَةُاللهِعَلَيْه خوا ته يو څو سوداګر راغلل او د پينځه زره (5000) درهمه نفع په بدله کښې ئې هغه سامان اخستل غوښتل نو هغوئي رَحْمَةُاللهِعَلَيْه اوفرمائيل: نن شپه صبر اوکړئ، په دويمه ورځ د سوداګرو دويمه ډله راغله، هغوئي د لس زره (10000) درهمو په نفع د اخستلو پيش کش اوکړو، امام بُخاري رَحْمَةُاللهِعَلَيْه اوفرمائيل: پرون چې کوم سوداګر راغلي وو، ما په هغوئي باندې د خرڅولو نيت کړے وو، بيا هغوئي رَحْمَةُاللهِعَلَيْه هغه سامان خرڅ کړو او اوئې فرمائيل: ما خپل نيت بدلول نه خوښولو.

(تاريخِ بَغداد، ج2، ص12 ملتقطاً)

**خوږو او محترمو اسلامي ورونړو!** د الله والؤ هم څه بنه شان دے، ديني مُعامَله وي يا دُنياوي، دا حضرات په يو حال کښې هم د الله پاك د ويرې نه نه بے ويرې کيږي بلکه په هر حال کښې د خپل نيت او زړه حفاظت کوي، کاش! چې د نن دور سوداګر هم د امام بُخاري رَحۡمَةُ اللهِ عَلَيۡه پيروي اوکړي او په رښتيا او امانت دارئ سره کاروبار اوکړي نو په زرق کښې به د خيروبرکت سره سره ډير اجر و ثواب اوګټي.

## د خرخوونکي د پاره د ويرې خبره

اِمام محمد غزالي رَحۡمَةُ اللهِ عَلَيۡه فرمائي: د قيامت په ورځ به سوداګر د هر هغه کس سره اودرولے شي چا چې په هغه څه خيز خرڅ کړے وي او د کومو خلقو سره چې د هغه اخستل خرڅول شوي وي د هغوئي د شمير برابر به د هغه نه حساب واخستې شي. (اِحیاء العلوم، ج2، ص111)

عاشقِ مال اس میں سوچ آخر کیا عروج و کمال رکھا ہے؟
تجھ کو مل جائے گا جو قسمت میں تیری رزقِ حلال رکھا ہے

صَلُّوا عَلَى الْحَبِيْب! صَلَّى اللهُ عَلٰى مُحَمَّد

## د اُستاذانو او شاګردانو شمير

اعلٰی حضرت امام احمد رضا خان رَحۡمَةُ اللهِ عَلَيۡه فرمائي: اِمام بُخاري رَحۡمَةُ اللهِ عَلَيۡه چې وفات کيدلو نو لس اتيا زره (90000) شاګردان او مُحَدِّثين ئې پريښودي وو. (ملفوظاتِ اعلٰی حضرت، ص238)

شارِح بُخاري مفتی شريف الحق امجدي رَحۡمَةُ اللهِ عَلَيۡه ليکي: د اِمام بُخاري رَحۡمَةُ اللهِ عَلَيۡه د اُستاذانو شمير يو زر اتيا دے. (نُزهَةُ القاری، ج1، ص119)

## د امام بُخاري نصيحت

خوږو او محترمو اسلامي ورونړو! اِمام بُخاري رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْه به اکثر دا اشعار لوستلو:

اِغْتَنِمْ فِي الْفَرَاغِ فَضْلَ الرُّكُوْعِ فَعَسٰى اَنْ يَّكُوْنَ مَوْتُكَ بَغْتَةً
كَمْ صَحِيْحٍ رَأَيْتُ مِنْ غَيْرِ سَقَمٍ خَرَجَتْ نَفْسُهُ الصَّحِيْحَةُ فَلْتَةً

**ترجمه:** **(1)** د فراغت په وخت کښې رکوع او سجود (يعني نفل لمُونځ) غنيمت اوګڼړه، نِزدې ده چې تا ته به مرګ ناڅاپه راشي. **(2)** ما ډير داسې صحت مند خلق ليدلي دي کوم چې څه ناجوړه نه وو او ناڅاپه د هغوئي روحونه اووتل. (مُکاشفةُ القلوب، ص 271)

آخرت کی کرو جلد تیاریاں موت آکر رہے گی تمہیں بے گماں
موت کا دیکھو اعلان کرتا ہوا سوئے گورِ غریباں جنازہ چلا
کہتا ہے، جامِ ہستی کو جس نے پیا وہ بھی میری طرح قبر میں جائے گا
تم اے بوڑھو سُنو! نوجوانو سنو! اے ضعیفو سنو! پہلوانو سنو!
موت کو ہر گھڑی سر پہ جانو سنو جلد توبہ کرو میری مانو سنو!

صَلُّوْا عَلَى الْحَبِيْب! صَلَّى اللهُ عَلٰى مُحَمَّد

## د خوږ نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّم په دربار کښې د امام بُخاري انتِظار

حضرت عبدُ الواحد طَوَاوَيسی رَحْمَةُ اللهِ عَلَيْه بيانوی چې ما په خوب کښې د خوږ آقا صَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم زيارت اوکړو، خوږ نبي صَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم د صحابهٔ کرامو عَلَيْهِمُ الرِّضْوَان سره په يو مقام ولاړ وو، ما د خوږ آقا صَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم په خدمت کښې سلام عرض کړو، خوږ آقا صَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم د سلام جواب را عطا کړو. ما د اودريدلو سبب معلوم کړو نو هغوئي صَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم ارشاد اوفرمائيلو: "زه د محمد

بِن اسماعیل بُخاري انتظار کووم. ‘‘ څه ورځې پس معلوم شو چې امام بُخاري رَحْمَۃُاللّٰہِ عَلَیْہ وفات شوے دے. په تحقیق کولو پته اولګېدله چې په کومه شپه د هغوئي رَحْمَۃُاللّٰہِ عَلَیْہ وفات شوے وو هم په هغه شپه ما د حُضُور صَلَّی اللّٰہُ تَعَالٰی عَلَیْہِ وَاٰلِہٖ وَسَلَّم زیارت کړے وو. (سِیَر اعلام النبلاء، ج10، ص319)

**اے عاشقانِ امام بُخاري!** اِمام بُخاري رَحْمَۃُاللّٰہِ عَلَیْہ په یکم شوالُ المُکَرَّم 256 هجرئ (د اختر په شپه) د 62 کالو په عمر کښې وفات شوے دے. د یوے مودے پورې د هغوئي رَحْمَۃُاللّٰہِ عَلَیْہ د قبر مبارك نه د مشك و عنبر نه زیاته ښکلې خوشبوئي راتله. بار بار به په قبر مبارك خاوره اچولے کیدله خو خلقو به د تَبَرُّك په وجه خاوره وړله. (طبقاتُ الشافعیة الکبرٰی، ج2، ص232، 233 مفهوماً) د هغوئي رَحْمَۃُ اللهِ عَلَیْه مزار مبارك سمرقند (اُزبکِستان) ته نِزدې خرتنګ نامې علاقه کښې دے. (سِیَر اعلام النبلاء، ج10، ص319، 320)

## د امام بُخاري رَحْمَۃُاللّٰہِ عَلَیْہ د مزار برکتونه

حضرت ابوفتح سمرقندي رَحْمَۃُاللّٰہِ عَلَیْہ فرمائي: په سمرقند کښې قحط راغلو (یعني د باران نه کیدو په وجه د غذا کمے شو). خلقو ډیر ځله ”د استسقٰی لمُونځ“ اوکړو، دُعاګانې اوغوښتلې خو باران اونشو، بیا یو نیك سړے د [سمرقند] ښار قاضي خوا ته لاړو او هغه ته ئې مشوره ورکړه چې تاسو د اِمام بُخاري رَحْمَۃُاللّٰہِ عَلَیْہ مزار شریف ته لاړ شئ او هلته د الله پاك نه د باران دُعا اوغواړئ کیدے شي چې الله پاك ستاسو دُعا قبوله کړې. د ښار قاضي دا مشوره قبوله کړه، د ښار خلق ئې ځان سره کړو او د امام بُخاري رَحْمَۃُاللّٰہِ عَلَیْہ مزار شریف ته حاضر شو، خلقو هلته ډیره په زارئ او ژړا د الله پاك نه په عاجزئ او انکسارئ دُعا اوغوښتله او د امام بُخاري رَحْمَۃُاللّٰہِ عَلَیْہ په وسیله ئې د دُعا سفارش اوکړو. هغه وخت په آسمان کښې وریځے راغلے او ووه ورځې مسلسل دومره زیات باران اوشو چې خلق په ”خرتنګ“ کښې حصار شو څکه چې د زیات

باران په وجه سمرقند ته رسيدل مشکل شوي وو. (د خرتنگ نه سمرقنده پورې د دريو ورځو فاصله ده.) (ارشاد الساری، ج1، ص67) **د الله پاك دِ په هغوئي رحمت وي او د هغوئي په برکت دِ زمونږه بے حسابه بخښنه اوشي.** اٰمِيْن بِجَاهِ النَّبِيِّ الْاَمِيْن صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم

اللّٰہُ غنی ! شانِ ولی ! راج دلوں پر دُنیا سے چلے جائیں حکومت نہیں جاتی

صَلُّوْا عَلَى الْحَبِيْب! صَلَّى اللهُ عَلٰى مُحَمَّد